(c) ketabton.com: The Digital Library

د مصر دعربي جمهوريت درادیو خپروني

# العربية بالراديو

درادیوله لارې په پښتوژبه دعربي ژبې زده کړه

لمړی کتاب - دریم ټوک

قاهره

٢٠٠٤

(c) ketabton.com: The Digital Library

أُلف هذا الكتاب بالعربية :

الأستاذ الدكتور / السيد يعقوب بكر

الأستاذ / محمد شفيق عطا

الأستاذ / سيد محمد العزاوى

الترجمة إلى البشتو : عبد الودود محمد عالم

مراجعة اللغة العربية : أستاذ / صبرى على رمضان

الرسوم بريشه الفنان / محمد قطب

---

په عربى ژبه ددى كتاب ليكونكى:

أستاذ داكتر / السيد يعقوب بكر

أستاذ / محمد شفيق عطا

أستاذ / سيد محمد العزاوى

پښتو ته ژباړه : عبد الودود محمد عالم

دعربى ژبى مراجعه كونكى: أُستاذ / صبرى على رمضان

رسمونه : دهنر مند محمد قطب

(c) ketabton.com: The Digital Library

دلړی کتابددریمی برخی مطالب

په دی برخه کی له ۲۸ درس نه تر ۴۰ درس پوری راغلی دی اوهغه اسمیة جملو پوری اړه لری :

۲۸ درس : هغه اسمیه جملی چه په هغوکی مبتدأ او خبر مفرد او مذکروی.

۲۹درس : هغه اسمیه جملی چه په هغوکی مبتدأ او خبر مفرد او مؤنث وی.

۳۰درس : هغه اسمیه جملی چه په هغوکی خبر ضمیر وی.

۳۱درس : هغه اسمیه جملی چه په هغوکی مبتدأ منفصل ضمیرونه وی.

۳۲درس : هغه اسمیه جملی چه په هغوکی مبتدأ له دووکلموڅخه جوړه شوی وی.

۳۳درس : هغه اسمیه جملی چه په هغوک مبتدأ متصلو ضمیروته منسوبه وی.

۳٤درس : هغه اسمیه جملی چه له (مبتدأ +صفت+خبر) نخه جوړی شوی وی

۳۵درس:هغه اسمیه جملی چه په هغوکی مبتدأ اوخبر دواړه صفتونه ولری .

۳٦ درس:هغه اسمیه جملی چه له مبتدأ اوداسی فعلی جملی نخه جوړه‌شوی وی چه دهغی فعل مضارع وی .

۳۷ درس:هغه اسمیه جملی چه په هغوکی مبتدأ داسی فعلی جمله وی چه فعل ئی ماضی وی.

۳۸ درس:هغه اسمیه جملی چه په هغوکی مبتدأ جاراومجرور یاظرف وی

۳۹درس:هغه اسمیه جملی چه په هغوکی خبر له مبتدأ نه مخکی راغلی وی .

٤۰ درس:هغه اسمیه جملی چه دهغو په اول کی کان او کانت راغلی وی .

(c) ketabton.com: The Digital Library

# دعربی ژبی الف با

أ

ب

ت

ث

ج

ح

خ

د

ذ

ر

ز

س

ش

ص

ض

ط

ظ

ع

غ

ف

ق

ك

ل

م

ن

ه

و

ی

(c) ketabton.com: The Digital Library

## اَلدَّرْسُ الثَّامِنُ وَالْعِشْرُونَ

### اته ویشتم درس

أُسْرَةُ سَالِمٍ فِي حُجْرَةِ الْجُلُوسِ .

دسالم کورنی دناستی په کوټه کی ده

سَالِمٌ : اَلْجَوُّ جَمِيلٌ ، وَالْهَوَاءُ لَطِيفٌ.

هوابنایسته ده . او هوا ښه ده .

نِهَادٌ : تَذْهَبُ الْيَوْمَ إِلَى حَدِيقَةِ الْحَيَوَانَاتِ .

نن ورځ باغ وحش ته ځو

نَبِيلٌ : صَحِيحٌ . . . أَنَا أُرِيدُ رُؤْيَةَ الْحَيَوَانَاتِ .

ښه(درسته) ده ... زه غواړم چه حیوانات وګورم .

هِنْدٌ : اَلْجَوُّ مُنَاسِبٌ . هَيَّا نَذْهَبُ إِلَى حَدِيقَةِ الْحَيَوَانَاتِ .

هوابنه ده ... راځی چه باغ وحش ته ولاړ شو .

(c) ketabton.com: The Digital Library



أُسْرَةُ سَالِم فِي حَدِيقَةِ الْحَيَوَانَاتِ .
دسالم کورنی په باغ وحش کی ده

نَبِيلٌ : اُنْظُرْ يَا أَبِي :
نبيل : پلاره وګوره .

اَلْفِيلُ ضَخْمٌ وَ الْأَسَدُ قَوِيٌّ
فيل ډيرغټ دی او زمری قوی دی .

نِهَادُ : اُنْظُرِي يَا أُمِّي :
نهاد : موري وګوره .

اَلدُّبُّ أَبْيَضُ وَ النَّمِرُ مُخَطَّطٌ
خوګ سپین دی او پړانګ برګ دی .

هِنْدُ : اُنْظُرِي يَا نِهَادُ :
هند : نهاد وګوره .

اَلْغَزَالُ لَطِيفٌ وَ الطَّاوُوسُ جَمِيلٌ
هوسی ښکلی ده او طاوس ښایسته دی .

(c) ketabton.com: The Digital Library



أُسْرَةُ سَالِمٍ فِي ظِلِّ شَجَرَةٍ .

دسالم کورنی دو نی سیوری لاندی ده .

سَالِمٌ : اَلْمَشْيُ مُتْعِبٌ وَالْجُلُوسُ مُرِيحٌ .

سالم : تګ خلک ستړی کوی او ناسته دمه ده .

هِنْدُ : اَلْجُلُوسُ لَطِيفٌ هُنَا ، وَالْمَكَانُ جَمِيلٌ .

هند:دلته ناسته خوند کوی ، او دالځای ښایسته دی .

نَبِيلٌ : شُكْرًا يَاأَبِي ، شُكْرًا يَا أُمِّي .

نبیل : پلاره تانه مننه ، موری تانه مننه .

كُنْتُ أُرِيدُ رُؤْيَةَ الْحَيَوَانَاتِ .

ماغوښتل چه حیوانات وګورم.

(c) ketabton.com: The Digital Library



لاندې جملې دسالم سره په جگ اواز ووایه ؟

اَلْجَوُّ جَمِیلٌ ، اَلْمَشْیُ مُتْعِبٌ ، اَلْجُلُوسُ مُرِیحٌ

څه وخت چه سالم د(اَلْجَوُّ) کلمه وایې دهوا صفت کوی
اود (جَمِیلٌ) کلمه دښایسته په معنی ده .
او څه وخت چه (اَلْمَشْیُ) کلمه وایې معنی ئی په لار تلل دی .
او کله چه (مُتْعِبٌ) کلمه وایی معنی ئی ستړی تیا ده .
او څه وخت چه (مُرِیحٌ)کلمه استعمالوی معنی ئی استراحت کول دی .
یاداشت : لاندې جملی له دوو نومونو (اسمو) څخه جوړی شوی دی .
او په دی جملوکی دوهم نوم ته په عربی کی (خبر) وایی .

اَلْجَوُّ جَمِیلٌ = اَلْجَوُّ + جَمِیلٌ

اَلْمَشْیُ مُتْعِبٌ = اَلْمَشْیُ + مُتْعِبٌ

اَلْجُلُوسُ مُرِیحٌ = اَلْجُلُوسُ + مُرِیحٌ

لاندی جملی په جگ غږ سره ووایئ

اَلْفِيلُ ضَخْمٌ . اَلأَسَدُ قَوِيٌّ . اَلدُّبُّ أَبْيَضُ.

اَلنَّمِرُ مُخَطَّطٌ . اَلغَزَالُ لَطِيفٌ . اَلطَّاوُوسُ جَمِيلٌ .

اَلْهَوَاءُ لَطِيفٌ . اَلْجَوُّ مُنَاسِبٌ . اَلْجُلُوسُ مُرِيحٌ .

اَلْمَكَانُ جَمِيلٌ .

پاس جملې له دوو مذکرونومونو څخه جوړې شوی دی .

(c) ketabton.com: The Digital Library



## تمرینونه

* لمړی تمرین : لاندی خالیگاوی په دغو مناسبو کلمو باندی ډکی کړی؟

( اَلْمَشْیُ - جَمِیلٌ - اَلْجَوُّ - مُرِیحٌ )

ا - اَلْجُلُوسُ . . . . . .

ب - اَلْجَوُّ . . . . . .

ج - . . . . . . لَطِیفٌ .

د - . . . . . . مُتْعِبٌ .

* دوم تمرین : لاندی کلمی په جملوکی استعمال کړی ؟

حَدِیقَةٌ - أُرِیدُ - تَذْهَبُ - اَلْیَوْمَ - مُنَاسِبٌ - حُجْرَةٌ - الْحَیَوَانَاتُ - اُنْظُرْ .

* دریم تمرین : لاندی جملی په مناسبو کلمو پوره کړی ؟

ا - اَلدُّبُّ . . . . . .

ب - اَلْفِیلُ . . . . . .

ج - اَلْأَسَدُ . . . . . .

د - اَلطَّاوُوسُ . . . . . .

هـ - اَلْغَزَالُ . . . . . .

و - اَلْمَکَانُ . . . . . .

ز - اَلْهَوَاءُ . . . . . .

ح - اَلنَّمِرُ . . . . . .

ط - اَلْجَوُّ . . . . . .

* څلورم تمرین : لاندی جملی په مناسبو کلمو پوره کړی ؟

ا - اُنْظُرْ یَا . . . . . .

ب - اُنْظُرِی یَا . . . . . .

ج - شُکْرًا یَا . . . . . .

د - شُکْرًا یَا . . . . . .

(c) ketabton.com: The Digital Library

## اَلدَّرْسُ التَّاسِعُ وَالْعِشْرُونَ

## نهه ویشتم درس

اَلْأُسْرَةُ وَاقِفَةٌ فِي ظِلِّ الشَّجَرَةِ .

**کورنی دونی سیوری لاندی ولاړه ده**

سَالِم : اَلْحدِيقَةُ وَاسِعَةٌ . أَيْنَ نَذْهَبُ الْآنَ ؟

**سالم : باغ وحش لوی دی . اوس چیرته ځو ؟**

هِنْد : اَلنَّعَامَةُ قَرِيبَةٌ . هَيَّا نَذْهَبْ إِلَى النَّعَامَةِ .

**هند : شتر مرغ نژدی دی راځئ چه شتر مرغ ته ولاړ شو.**

نَبِيل : هَيَّا نَذْهَبْ إِلَى النَّعَامَةِ .

**نبیل : راځئ چه شتر مرغ ته ولاړ شو**

نِهَاد : وَأَنَا كَذَلِكَ أُرِيدُ رُؤْيَةَ النَّعَامَةِ .

**نهاد: زه هم غواړم چه شتر مرغ وګورم.**

(c) ketabton.com: The Digital Library



نِهَادُ : أُنْظُرْ يَا نَبِيلُ .
نهاد : يانبيل وگوره

اَلنَّعَامَةُ كَبِيرَةٌ . اَلنَّعَامَةُ سَرِيعَةٌ .
شتر مرغ غټ دی . شتر مرغ چالاك دی .

نَبِيلُ : صَحِيحٌ يَا نِهَادُ
نبيل : يانهاد سمه ده

اَلنَّعَامَةُ ضَخْمَةٌ . اَلنَّعَامَةُ قَوِيَّةٌ
شتر مرغ ډیر غټ دی . شتر مرغ قوی دی

نِهَادُ : شُكْرًا يَا أُمِّي . شُكْرًا يَا نَبِيلُ .
نهاد : مورې مننه . يانبيل مننه .

كُنْتُ أُرِيدُ رُؤْيَةَ النَّعَامَةِ .
ماغوښتل چه شتر مرغ وگورم .

سَالِمٌ : هَيَّا نَذْهَبِ الْآنَ إِلَى مَكَانِ الزَّرَافَةِ .

سالم : راځئ چه اوس د زرافې ځای ته ولاړ شو

نَبِيلٌ : هَيَّا بِنَا . أَنَا أُرِيدُ رُؤْيَةَ الزَّرَافَةِ .

نبيل : راځئ چه ولاړشو زه غواړم چه زرافه وګورم

هِنْدٌ :

أُنْظُرْ يَا نَبِيلُ :

هند : آی نبيل وګوره

الزَّرَافَةُ طَوِيلَةٌ .　　الزَّرَافَةُ مُزَرْكَشَةٌ .

زرافه لوړه ده　　زرافه برګه ده .

نَبِيلٌ :

أُنْظُرِي يَا أُمِّي :

نبيل : موري وګوره

الزَّرَافَةُ هَادِئَةٌ .　　الزَّرَافَةُ جَمِيلَةٌ .

زرافه ارامه ده .　　زرافه ښايسته ده

نِهَادُ : أُرِيدُ الْآنَ رُؤْيَةَ الطُّيُورِ يَا أَبِي .

نهاد : پلاره اوس غواړم چه مرغان وګورم

(c) ketabton.com: The Digital Library



سَالِمٌ : نَذْهَبُ إِلَى الطُّيُورِ بَعْدَ الظُّهْرِ ، اَلطُّيُورُ بَعِيدَةٌ يَا نِهَادُ .
سالم: ماسپین نه وروسته مرغانوته ځو، نهاد مرغان لری دي .

هِنْدُ : اَلْبُحَيْرَةُ قَرِيبَةٌ يَا سَالِمُ : هَيَّا نَذْهَبُ إِلَى الْبُحَيْرَةِ .
هند : سالم بحیره نزدی ده ، راځی چه بحیری ته لاړشو.

اَلْأُسْرَةُ وَاقِفَةٌ . اَلْبُحَيْرَةُ بَدِيعَةٌ .
کورنی ولاړه ده . بحیره په زړه پوری ده .

سَالِم : اُنْظُرِى يَا هِنْدُ . اَلْبُحَيْرَةُ جَمِيلَةٌ . اَلْبُحَيْرَةُ هَادِئَةٌ .
سالم : هند وگوره بحیره ښکلی ده بحیره ارامه ده

هِنْد : هَيَّا نَجْلِسْ بِجِوَارِ الْبُحَيْرَةِ . اَلْبُحَيْرَةُ بَدِيعَةٌ .
هند:راځی چه دبحیری په غاړه کینو . بحیره په زړه پوری ده .

(c) ketabton.com: The Digital Library



لاندی جملی په جگ اواز ولولی ؟

اَلنَّعَامَةُ قَرِيبَةٌ ، اَلزَّرَافَةُ طَوِيلَةٌ ، اَلْبُحَيْرَةُ بَدِيعَةٌ

څه وخت چه هند شترمرغ (اَلنَّعَامَةُ) ته غږیږي د (قَرِيبَةٌ)(نژدی ده) کلمه استعمالوی . همدارنگه څه وخت چه زرافه (اَلزَّرَافَةُ) او بحیره (اَلْبُحَيْرَةُ) ته خبری کوی د (عَالِيَةٌ) لوړه او د (بَدِيعَةٌ) زړه پوری کلمی استعمالوی

توجه وکړی
لاندی جملی له دوو نومونو (اسمو) څخه جوړی شوی دی.
چه دوم نوم (اسم) ته په جمله کی خبروایی .

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَلنَّعَامَةُ قَرِيبَةٌ | = | اَلنَّعَامَةُ | + | قَرِيبَةٌ |
| اَلزَّرَافَةُ طَوِيلَةٌ | = | اَلزَّرَافَةُ | + | طَوِيلَةٌ |
| اَلْبُحَيْرَةُ بَدِيعَةٌ | = | اَلْبُحَيْرَةُ | + | بَدِيعَةٌ |

(c) ketabton.com: The Digital Library



لاندی جملی په جگ اواز ووایی

فکر مووی : دلاندی جملو څخه هره جمله دوو مؤنثو نومونو څخه جوړه شوی ده .

اَلْأُسْرَةُ وَاقِفَةٌ ، اَلْحَدِيقَةُ وَاسِعَةٌ ، اَلنَّعَامَةُ كَبِيرَةٌ

اَلزَّرَافَةُ هَادِئَةٌ اَلزَّرَافَةُ مُزَرْكَشَةٌ ، اَلزَّرَافَةُ جَمِيلَةٌ

اَلنَّعَامَةُ ضَخْمَةٌ ، اَلنَّعَامَةُ قَوِيَّةٌ ، اَلنَّعَامَةُ سَرِيعَةٌ

اَلْبُحَيْرَةُ قَرِيبَةٌ ، اَلْبُحَيْرَةُ هَادِئَةٌ ، اَلْبُحَيْرَةُ جَمِيلَةٌ

(c) ketabton.com: The Digital Library



## تمرینونه

* لمړی تمرین :

لاندی کلمی په مناسبو جملوکی استعمال کړی .

قَرِيبَةٌ ـ وَاسِعَةٌ ـ وَاقِفَةٌ ـ ضَخْمَةٌ ـ كَبِيرَةٌ ـ سَرِيعَةٌ
هَادِئَةٌ ـ طَوِيلَةٌ

* دوهم تمرین :ـ

لاندی پوښتنوته جواب ورکړی؟

ا ـ أَيْنَ تَقِفُ الأُسْرَةُ ؟
ب ـ مَاذَا قَالَ سَالِمٌ لِأُسْرَتِهِ ؟
ج ـ مَاذَا تُرِيدُ نِهَادُ ؟
د ـ مَتَى تَذْهَبُ الأُسْرَةُ لِرُؤْيَةِ الطُّيُورِ ؟

* دریم تمرین :ـ

په لاندی جملوکی خالی ځایونه دحیواناتو مناسبو نوموتو باندی ډك کړی.

ا ـ . . . . . مُزَرْكَشَةٌ . ‏ هـ ـ . . . . . . قَوِيَّةٌ .
ب ـ . . . . . هَادِئَةٌ . ‏ و ـ . . . . . . سَرِيعَةٌ .
ج ـ . . . . . . جَمِيلَةٌ . ‏ ز ـ . . . . . . قَوِيٌّ .
د ـ . . . . . . ضَخْمٌ .

* څلورم تمرین :ـ

لاندی جوابو نوته مناسب سوالونه جوړ کړی

ا ـ اَلْبُحَيْرَةُ قَرِيبَةٌ .
ب ـ نَذْهَبُ إِلَى الْحَدِيقَةِ بَعْدَ الظُّهْرِ .
ح ـ قَالَتْ نِهَادُ : شُكْرًا يَا أَبِي .

(c) ketabton.com: The Digital Library

# اَلدَّرْسُ الثَّلَاثُونَ

## دیرشم درس

اَلْأُسْرَةُ جَالِسَةٌ بِجِوَارِ الْبُحَيْرَةِ .

کورنی دبحیری په غاړه ناسته ده

هِنْدُ : اُنْظُرْ يَا نَبِيلُ !

هند : یانبیل وګوره .

هَذِهِ بَطَّةٌ ، وَهَذِهِ وَزَّةٌ .

داهیلی ده . او دامرغابی ده .

سَالِمٌ : اُنْظُرِي يَا نِهَادُ :

سالم : نهاد وګوره .

هَذِهِ بَجَعَةٌ . وَهَذَا قَارِبٌ .

داکوتنه ده. داکشتی (جاله) ده .

نِهَادُ : هَيَّا نَذْهَبِ الْآنَ إِلَى مَكَانِ الطُّيُورِ يَا أَبِي .

**نهاد : پلاره راځئ چه اوس دمرغانو ځای ته لاړشو**

أَنَا أُرِيدُ رُؤْيَةَ الطُّيُورِ .

**زه غواړم چه اوس مرغان وګورم .**

سَالِمُ : هَيَّا إِلَى مَكَانِ الطُّيُورِ يَا أَوْلَادُ .

**سالم : بچیانو راځئ چه دمرغانو ځای ته لاړشو .**

أُنْظُرِي يَا نِهَادُ :

**نهاد وګوره**

هَذَا صَقْرٌ . وَهَذَا نَسْرٌ .

**دا باز دی . او دا شاهین دی**

سَالِمُ : أُنْظُرِي هُنَاكَ :

**سالم: هلته وګوره .**

هَذِهِ بَبْغَاءُ . وَهَذِهِ حِدَأَةٌ .

**دا طوطی دی او دا کارغه دی**

(c) ketabton.com: The Digital Library



نَبِيلٌ : اَلْبَبْغَاءُ جَمِيلَةٌ ، وَالْحِدَأَةُ قَبِيحَةٌ .
نبیل : طوطی ښایسته دی ، اوکارغه بد رنګ دی ؟

نِهَادُ : وَمَا اسْمُ هَذِهِ الطُّيُورِ يَا أَبِي ؟
نهاد : پلاره ددی مرغانو نومونه څه شی دی .

سَالِمٌ :

هَذَا بُلْبُلٌ .
دابلبل دی .

وَهَذَا غُرَابٌ .
او داکارغه دی

هَذِهِ حَمَامَةٌ .
داکوتره ده

وَهَذِهِ يَمَامَةٌ .
او داپختکه ده .

هِنْدُ : هَيَّا نُشَاهِدْ هٰذِهِ الْحَيَوَانَاتِ كَذٰلِكَ .

هند : راځئ داحیوانات هم وګورو .

سَالِمٌ : هَيَّا يَا نَبِيلُ ، هَيَّا يَا نِهَاد .

سالم : نبیل راځه ، نهاد راځه .

نَبِيلٌ : مَا اسْمُ هٰذِهِ الْحَيَوَانَاتِ يَا أَبِي ؟

نبیل : پلاره ددغو حیواناتو نومونه څه دی ؟

سَالِمٌ :

هٰذَا ذِئْبٌ . | وَهٰذَا تِمْسَاحٌ .

دالیوه دی . | او داتمساح دی

هٰذِهِ زَرَافَةٌ . | وَهٰذِهِ غَزَالَةٌ .

دازراقه ده . | او داهوسی ده .

(c) ketabton.com: The Digital Library



نِهَادُ : تَعِبْتُ مِنَ الْمَشْيِ يَا أُمِّي . هَيَّا نَرْجِعْ إِلَى الْبَيْتِ .

نهاد : موری زه دگرځیدلو نه ستړی شوم . راځئ چه کورته وگرځو

سَالِمٌ : هَيَّا يَا نِهَادُ ، هَيَّا يَا نَبِيلُ ، هَيَّا نَرْجِعْ إِلَى الْبَيْتِ .

سالم : نهاد راځه ، نبیل راځه ، راځئ چه کورته وگرځو .

نِهَادُ : شُكْرًا يَا أَبِي ، شُكْرًا يَا أُمِّي .

نهاد : مننه یاپلاره ، مننه یاموری .

كُنْتُ أُرِيدُ رُؤْيَةَ الطُّيُورِ .

ماغوښتل چه مرغان وگورم

نَبِيلُ : وَأَنَا كَذَلِكَ ، شُكْرًا يَا أَبِي ، شُكْرًا يَا أُمِّي .

نبیل : اوزه هم یا پلاره مننه ، یاموری مننه

كُنْتُ أُرِيدُ رُؤْيَةَ الْحَيَوَانَاتِ .

ماغوښتل چه حیوانات وگورم .

(c) ketabton.com: The Digital Library



لاندی جملی په جگ اواز ووایی

هَذَا صَقْرٌ .　　هَذَا نَسْرٌ .　　هَذَا بُلْبُلٌ .

توجه وکړی:

لاندی جملی له دوو کلموڅخه جوړی شوی دی .

اسم اشاره او اسم اودواړه کلمی مذکری دی

اسم اشاره + مذکر اسم دی.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| هَذَا صَقْرٌ | = | هَذَا | + | صَقْرٌ |
| هَذَا نَسْرٌ | = | هَذَا | + | نَسْرٌ |
| هَذَا بُلْبُلٌ | = | هَذَا | + | بُلْبُلٌ |

(c) ketabton.com: The Digital Library



لاندې جملې ولولئ:-

هَذِهِ بَطَّةٌ .　　　هَذِهِ وَزَّةٌ .　　　هَذِهِ بَجَعَةٌ .

دې جملو ته فکر وکړئ چه له دوو کلمو څخه جوړې شوې دي .
اسم اشاره او اسم ، او دواړه کلمې مؤنثې دي اسم اشاره + مؤنث اسم.

هَذِهِ بَطَّةٌ = هَذِهِ + بَطَّةٌ

هَذِهِ وَزَّةٌ = هَذِهِ + وَزَّةٌ

هَذِهِ بَجَعَةٌ = هَذِهِ + بَجَعَةٌ

(c) ketabton.com: The Digital Library



لاندې جملې ولولئ :
فکر وکړئ هره جمله له دوو کلمو څخه جوړه شوې ده .
چه هغه اسم اشاره مفرد مذکر (هذا)
اومفرد مذکر اسم دی

هَذَا قارِب .                هَذَا غُرَابٌ .

هَذَا ذِئْبٌ .                هَذَا تِمْسَاحٌ .

لاندې جملې ولولئ :
فکر وکړئ هره جمله له دوو کلمو څخه جوړه شوې ده چه هغه
اسم اشاره مفرد مؤنث (هذه) او مفرد مؤنث اسم دی

هَذِهِ بَبَّغَاءُ .                هَذِهِ بُومَةٌ .

هَذِهِ يَمَامَةٌ .                هَذِهِ حَمَامَةٌ .

(c) ketabton.com: The Digital Library



## تمرینونه

لمړی تمرین

دا شاري دااسم (هٰذا) یا (هٰذهِ) لاندي کلموکی استعمال کړی.

صَقْرٌ ـ نَسْرٌ ـ بَبْغَاءٌ ـ بُومَةٌ ـ بَطَّةٌ ـ قَارَبٌ ـ حَمَامَةٌ ـ غُرَابٌ

طُيُورٌ ـ بُلْبُلٌ ـ يَمَامَةٌ .

دوهم تمرین :

لاندی کلمی په مناسبو جملوکی استعمال کړی .

مَكَانٌ ـ أَنَا ـ هَيَّا ـ اَلطُّيُورُ ـ هُنَاكَ ـ هٰذهِ ـ هٰذَا ـ الْأُسْرَةُ

اَلْبُحَيْرَةُ ـ اِسْمٌ

دریم تمرین :ـ

لاندی جملی پوره کړی

ا ـ فِی حَدِیقَةِ الْحَیَوَانَاتِ . . . . . . وَ . . . . . وَ . . . . . . .

ب ـ . . . . . . وَ . . . . . . وَ . . . . . حَيَوَانَاتٌ .

ج ـ . . . . . . وَ . . . . . . وَ . . . . طُيُورٌ .

د ـ هَيَّا نَرْجِعْ إِلَى . . . . . .

څلورم تمرین :ـ

لاندی پوښتنوته جوابونه ورکړی .

ا ـ أَيْنَ كَانَتِ الْأُسْرَةُ جَالِسَةً ؟

ب ـ مَاذَا قَالَتْ نِهَادُ ؟

ج ـ لِمَاذَا تُرِيدُ نِهَادُ أَنْ تَرْجِعَ إِلَى الْبَيْتِ ؟

د ـ مَا هٰذهِ الطُّيُورُ ؟

(c) ketabton.com: The Digital Library

# اَلدَّرْسُ الْحَادِی وَالثَّلاثُونَ

## یو دیرشم درس

حَامِدٌ : اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ يَا أُسْتَاذُ سَالِم .

حامد : استاذ سالم السلام علیکم ورحمة الله.

سَالِمٌ : وَعَلَيْكُمُ السلام وَرَحْمَةُ اللهِ يَا أَخِي . مَنْ أَنْتَ ؟

سالم : وعلیکم السلام ورحمة الله وروره ته څوک یې ؟

حَامِدٌ : أَنَا حَامِدٌ يَا أُسْتَاذُ سَالِم . أَنَا تِلْمِيذُكَ . أَنْتَ أُسْتَاذِي .

حامد : زه حامد یم یا استاذ سالم .زه ستا شاګردیم ته مې استادنی .

سَالِمٌ : أَهْلًا وَسَهْلًا يَا حَامِدُ . أَيْنَ أَنْتَ الْآنَ ؟

سالم : په خیر راغلی حامده . ته اوس چیرته یې ؟

(c) ketabton.com: The Digital Library



حَامِدٌ : أَنَا طَالِبٌ . أَنَا فِي كُلِّيَّةِ الطِّبِّ .

حامد : زه محصل یم . زه دطب په پوهنځی کی محصل یم .

سَالِمٌ : وَلِمَاذَا دَخَلْتَ كُلِّيَّةَ الطِّبِّ يَا حَامِدُ ؟

سالم:ولی دی دطب په پوهنځی کی داخله اخستی ؟

حَامِدٌ : أَبِي طَبِيبٌ ، وَهُوَ مَشْهُورٌ ؛ هُوَ يُحِبُّ الطِّبَّ .

حامد:ـ زما پلار طبیب دی ، هغه مشهوردی ، هغه طب خوښوی.

وَأَنَا كَذَلِكَ أُحِبُّ الطِّبَّ .

زماهم طب خوښیږی .

سَالِمٌ : وَمَنْ هَذِهِ يَا حَامِدُ ؟

سالم : داخوک ده یاحامده ؟

حَامِدٌ : هَذِهِ سُعَادُ ، هِيَ أُخْتِي الصَّغِيرَةُ ، هِيَ صَدِيقَةُ نِهَادَ .

حامد : داسعاد ده،زما وړه خورده،هغه‌د نهاد ملګری ده .

سَالِمٌ : هَلْ أَنْتِ صَدِيقَةُ نِهَادَ ؟

سالم : ایا ته دنهادملګری ئی؟

سُعَادُ : نَعَمْ يَا أُسْتَاذُ سَالِم . أَنَا صَدِيقَةُ نِهَادَ ، وَهِيَ صَدِيقَتِي .

سعاد : هو یااستاذ سالم ، زه دنهاد ملګری یم ، اوهغه زماملګری ده؟

سَالِمٌ : وَأَيْنَ بَيْتُكُمْ يَا حَامِدُ ؟

سالم : حامد ستاسی کورچیرته دی

حَامِدٌ : بَيْتُنَا فِي هَذَا الشَّارِعِ ، وَهُوَ قَرِيبٌ مِنْكُمْ يَا أُسْتَاذُ .

حامد : زموږ کورپه دی سړک کی دی ، زموږ کورتاسی ته نږدی دی یااستاذه.

(c) ketabton.com: The Digital Library



سَالِمٌ : نَحْنُ جِيرَانٌ يَا حَامِد .

سالم : حامد مونږ همسایه (گاونډیان) یو .

حَامِدٌ : نَعَمْ ، نَحْنُ جِيرَانٌ يَا أُسْتَاذُ . نَحْنُ فِي شَارِعٍ وَاحِدٍ .

حامد هو، استاذ مونږ گاونډیان یو . مونږ په یوه سړک کې اوسیږو .

أَنْتُمْ عَلَى الْيَمِينِ ، وَنَحْنُ عَلَى الشِّمَالِ .

تاسی ښی اړخ کی اوسیږی ، اومونږ چپ (کیڼ) اړخ کی اوسیږو.

سَالِمٌ : وَمَنْ هَؤُلَاءِ يَا حَامِدُ ؟

سالم :هغوی څوك دی حامده

حَامِدٌ : هُمْ إِخْوَتِي . هُمْ ذَاهِبُونَ إِلَى الْمَدْرَسَةِ . هُمْ أَصْدِقَاءُ نَبِيلٍ .

حامد : هغوی زماخور او ورورډی . هغوی مکتب ته ځی هغوی دنبیل ملگری دی .

(c) ketabton.com: The Digital Library



سَالِمٌ : هَلْ أَنْتُمْ فِي مَدْرَسَةِ نَبِيلٍ ؟
سالم : ایاتاسی دنبیل په مکتب کی یاست ؟

اَلْأَوْلَادُ : نَعَمْ ، نَحْنُ فِي مَدْرَسَةِ نَبِيلٍ .
ماشومان : هو، مونږ دنبیل په مکتب کی یو .

نَحْنُ أَصْدِقَاءُ نَبِيلٍ .
مونږ دنبیل ملگری یو .

وَهُوَ صَدِيقُنَا .
او هغه زمونږ ملگری دی .

سَالِمٌ : أَنْتُمْ مُؤَدَّبُونَ . أَنَا مَسْرُورٌ مِنْكُمْ . مَعَ السَّلَامَةِ .
سالم : تاسی باادبه یاستی زه تاسی نه خوشحا له یم .
په مخه موښه

حَامِدٌ : مَعَ السَّلَامَةِ يَا أُسْتَاذُ سَالِم .
حامد یااستاذ سالم په مخه دی ښه.

(c) ketabton.com: The Digital Library



لاندې جملې ولولئ .

اوکومو کلمو لاندې چه خط کش شوی ورته خاص فکر وکړئ .

أَنَا حَامِدٌ .　　أَنَا صَدِيقَةُ نِهَادَ .　　نَحْنُ جِيرَانٌ .

زه حامد یم .　　زه دنهاد ملگرې یمه .　　موږ کاونډیان یو .

أَنْتَ أُسْتَاذِي .　　أَنْتِ صَدِيقَةُ نِهَادَ .　　أَنْتُمْ مُؤَدَّبُونَ .

ته زما استاذئې　　ته دنهاد ملگرې ئې　　تاسې مؤدب یاستئ

هُوَ طَبِيبٌ .　　هِيَ أُخْتِي الصَّغِيرَةُ .　　هُمْ إِخْوَتِي.

هغه ډاکتر(طبیب)دی . هغه زماوړه خورده .　　هغوی زماورونه دی.

(c) ketabton.com: The Digital Library



لاندې جملې ولولئ : اوهغه کلمې چه لاندې ترې خط کش شوی خاص فکر ورته وکړئ

حامد : أَنَا تِلْمِيذُكَ ، أَنَا طَالِبٌ ، أَنَا فِي كُلِّيَّةِ الطِّبِّ .
حامد: زه ستا شاگردیم ، زه محصل یم ،زه دطب په پوهنځی کی یم

سُعَادُ : أَنَا سُعَادُ ، أَنَا تِلْمِيذَةٌ ، أَنَا صَدِيقَةُ نِهَادَ .
سعاد : زه سعاد یم ، زه زده کونکی یمه زه دنهاد ملگری یمه

حَامِدٌ : نَحْنُ جِيرَانٌ ، نَحْنُ فِي شَارِعٍ وَاحِدٍ ، نَحْنُ عَلَى الشِّمَالِ .
حامد : موږ گاونډیان یو ، موږ په یوه سړک کی یو ، موږ چپ اړخ ته یو.

هُوَ طَبِيبٌ ، هُوَ يُحِبُّ الطِّبَّ ، هُوَ مَشْهُورٌ .
هغه ډاکتر (طبیب) دی دهغه طب خوښیږی ، هغه مشهور دی

هِيَ أُخْتِي ، هِيَ تِلْمِيذَةٌ ، هِيَ صَدِيقَةُ نِهَادَ .
هغه زماخورده ، هغه زده کونکی ده ، هغه دنهاد ملگری ده .

هُمْ إِخْوَتِي ، هُمْ ذَاهِبُونَ إِلَى الْمَدْرَسَةِ ، هُمْ أَصْدِقَاءُ نَبِيلٍ .
هغوی زما وروڼه دی ، هغوی مکتب ته ځي ، هغوی دنبیل ملگری دی .

أَنْتَ أُسْتَاذِي ، أَنْتِ تِلْمِيذَةٌ ، أَنْتُمْ مُؤَدَّبُونَ .
ته زما استاذئی ، ته زده کوَنکی ئی ، تاسی مؤدب یاستی .

لاندې جملې ولولئ :

أَنَا طَالِبٌ . أَنْتَ مُدَرِّسٌ . هُوَ مُهَنْدِسٌ .

زه محصل یم    ته معلم ئې    هغه مهندس (انجنیر) دی

أَنَا سُعَادُ . أَنْتِ نِهَادُ . هِيَ إِلْهَامُ .

زه سعاد یمه    ته نهاد ئې    هغه الهام ده .

نَحْنُ عَلَى الْيَمِينِ . أَنْتُمْ عَلَى الشِّمَالِ . هُمْ أَصْدِقَاؤُنَا .

مونږ ښی اړخ ته یو    تاسی چپ اړخ ته یاستی. هغوی زمونږ ملګری دی

(c) ketabton.com: The Digital Library



## تمرینونه

**لمړی تمرین:-**

**لاندی جملو دپاره قوسو نوکی مناسب ضمیر استعمال کړی.**

( هُوَ - هِيَ - هُمْ ) صَدِيقِي . ( هُمْ - هُوَ - هِيَ ) إِخْوَتِي.
( هِيَ - هُمْ - هُوَ ) صَدِيقَتِي . (هِيَ -هُوَ-هُمْ )ذَاهِبُونَ إِلَى الْمَدْرَسَةِ .
( هُمْ - هِيَ - هُوَ ) أُخْتِي . ( هُوَ - هُمْ - هِيَ ) أَصْدِقَاءُ .

**دوهم تمرین :**

**لاندی خالی ځای کی مناسبه جمله ولیکی .**

نَقُولُ لِنَبِيلٍ : بَيْتُكَ فِي هَذَا الشَّارِعِ .
وَنَقُولُ لِشَهَادَ : . . . . . . . . . . . . . . .

**دریم تمرین :-**

**لاندی جملی په جګ اوازسره ولولی :**

أَنَا دَخَلْتُ كُلِّيَّةَ الطِّبِّ . نَحْنُ دَخَلْنَا كُلِّيَّةَ الطِّبِّ .
أَنْتَ دَخَلْتَ كُلِّيَّةَ الطِّبِّ . أَنْتُمْ دَخَلْتُمْ كُلِّيَّةَ الطِّبِّ .
أَنْتِ دَخَلْتِ كُلِّيَّةَ الطِّبِّ . هُمْ دَخَلُوا كُلِّيَّةَ الطِّبِّ .

**څلورم تمرین :-**

**لاندی خالی ځای کی مناسبه جمله ولیکی . :**

نَقُولُ لِنَبِيلٍ : صَدِيقُكَ طَبِيبٌ مَشْهُورٌ .
وَنَقُولُ لِأَصْدِقَائِهِ : . . . . . . . . . . . . . .

(c) ketabton.com: The Digital Library

# اَلدَّرْسُ الثَّانِي وَالثَّلَاثُونَ

## دوديرشم درس

مَطْعَمٌ

رستوران (هوټل)

مَنْظَرُ الْمَطْعَمِ جَمِيلٌ .

درستوران شکل (منظر) ښکلی دی.

بَابُ الْمَطْعَمِ وَاسِعٌ .

درستوران دروازه لويه ده.

زُجَاجُ الْمَطْعَمِ نَظِيفٌ .

درستوران ښيښې پاکې دي.

صَاحِبُ الْمَطْعَمِ وَاقِفٌ .

درستوران خاوند ولاړ دی.

خُبْزٌ + خُضَرٌ + فَاكِهَةٌ = طَعَامٌ

ډوډۍ ترکاري (سبزيجات) ميوه خوراک

سِكِّينٌ مِلْعَقَةٌ + شَوْكَةٌ = أَدَوَاتُ الطَّعَامِ

چاړه کاچوغه پنجه دخوراک وسایل

طَبَّاخٌ + عَامِلٌ + خَادِمٌ = عُمَّالٌ

آشپز کارگر خدمتگار کارگران

مَائِدَةٌ + مَائِدَةٌ + مَائِدَةٌ = مَوَائِدُ
میز میز میز میزونه
طَبَقٌ + طَبَقٌ + طَبَقٌ = أَطْبَاقٌ
قاب قاب قاب قابونه
كُوبٌ + كُوبٌ + كُوبٌ = أَكْوَابٌ
گیلاس گیلاس گیلاس گیلاسونه

(c) ketabton.com: The Digital Library



أُسْرَةُ سَالِمٍ فِي الْمَطْعَمِ .
دسالم کورنی په رستوران کی ده

سَالِم : أَنَا أُحِبُّ هَذَا الْمَطْعَمَ .
زمادا رستوران خوښ دی

أَدَوَاتُ الطَّعَامِ نَظِيفَةٌ ، وَأَصْنَافُ الطَّعَامِ لَذِيذَةٌ .
دډوډی خوړلو وسایل پاك دی ، اوخوراکونه خوندور دی.

مَكَانُ الْمَطْعَمِ هَادِئٌ ، وَأَسْعَارُ الْمَطْعَمِ مُنَاسِبَةٌ .
رستوران په ارام ځای کی دی ، اودرستوران نرخونه مناسب دی .

أَنَا أُحِبُّ هَذَا الْمَطْعَمَ .
زمادا رستوران خوښ دی.

(c) ketabton.com: The Digital Library



هِنْد : وَأَنَا كَذَلِكَ أُحِبُّ هَذَا الْمَطْعَمَ .
هند : زما همدرانگه دارستوران خوښ دی.

صَاحِبُ الْمَطْعَمِ أَمِينٌ . وَطَبَّاخُ الْمَطْعَمِ مَاهِرٌ .
درستوران خاوند امانت کاردی. اودرستوران اشپز هو ښیار دی.

وَنِظَامُ الْمَائِدَةِ بَدِيعٌ . وَأَزْهَارُ الْمَوَائِدِ بَدِيعَةٌ .
دمیز نظام په زړه پوری دی. او دمیزونو گلان ښکلی دی.

نِهَاد : هَذَا الْمَطْعَمُ نَظِيفٌ يَا أَبِي .
نهاد : دارستوران پاك دی ای پلاره .

مَنْظَرُ الْمَطْعَمِ جَمِيلٌ . وَنِظَامُ الْمَوَائِدِ بَدِيعٌ .
درستوران منظر ښایسته دی . اودمیزونو نظام ئی په زړه پوری دی

وَأَصْنَافُ الطَّعَامِ لَذِيذَةٌ . وَعُمَّالُ الْمَطْعَمِ مُؤَدَّبُونَ .
خوراکونه ئی خوندوردی . اودرستوران کارکونکی مؤدب دی .

(c) ketabton.com: The Digital Library



نَبِيلٌ : أَنَا أُحِبُّ هَذَا الْمَطْعَمَ يَا نِهَاد .

نبيل: نهاد زمادا رستوران خوښ دی .

فَاكِهَةُ الْمَطْعَمِ طَازَجَةٌ .  وَصُوَرُ الْحَائِطِ جَمِيلَةٌ .

درستوران میوی تازه دی  او دديوالو عکسونه ئی ښایسته دی.

زُهُورُ الْمَطْعَمِ بَدِيعَةٌ .  وَأَكْوَابُ الْمَاءِ نَظِيفَةٌ .

درستوران گلان ښایسته دی  . او داوبوگیلاسونه ئی پاك دی

سَالِمٌ : نَحْنُ نُحِبُّ هَذَا الْمَطْعَمَ .

سالم : زمونږ دارستوران خوښ دی

هِنْدٌ : صَحِيحٌ ، نَحْنُ نُحِبُّ هَذَا الْمَطْعَمَ .

هند:درسته ده زمونږ دارستوران خوښ دی .

(c) ketabton.com: The Digital Library



لاندی جملی ولولی :

أَدَوَاتُ الطَّعَامِ نَظِيفَةٌ . أَصْنَافُ الطَّعَامِ لَذِيذَةٌ. أَسْعَارُ الْمَطْعَمِ مُنَاسِبَةٌ .

فکر مووی : هره جمله دلاندی جملو څخه له دوو برخوڅخه جوړه شوی ده

أَدَوَاتُ الطَّعَامِ نَظِيفَةٌ = أَدَوَاتُ الطَّعَامِ + نَظِيفَةٌ

أَصْنَافُ الطَّعَامِ لَذِيذَةٌ = أَصْنَافُ الطَّعَامِ + لَذِيذَةٌ

أَسْعَارُ الْمَطْعَمِ مُنَاسِبَةٌ = أَسْعَارُ الْمَطْعَمِ + مُنَاسِبَةٌ

(c) ketabton.com: The Digital Library



**لاندې جملې ولولئ . او دغو جملو ترکیب ته پام لرنه وکړئ .**

بَابُ الْمَطْعَمِ وَاسِعٌ . زُجَاجُ الْمَطْعَمِ نَظِيفٌ .

مَنْظَرُ الْمَطْعَمِ جَمِيلٌ . صَاحِبُ الْمَطْعَمِ وَاقِفٌ .

مَكَانُ الْمَطْعَمِ هَادِئٌ . صَاحِبُ الْمَطْعَمِ أَمِينٌ .

طَبَّاخُ الْمَطْعَمِ مَاهِرٌ . نِظَامُ الْمَائِدَةِ بَدِيعٌ .

أَزْهَارُ الْمَوَائِدِ بَدِيعَةٌ . عُمَّالُ الْمَطْعَمِ مُؤَدَّبُونَ .

فَاكِهَةُ الْمَطْعَمِ طَازَجَةٌ . صُوَرُ الْحَائِطِ جَمِيلَةٌ .

أَزْهَارُ الْمَطْعَمِ بَدِيعَةٌ . أَكْوَابُ الْمَاءِ نَظِيفَةٌ .

(c) ketabton.com: The Digital Library



## تمرینونه

لمړی تمرین :- ددې لاندې پوښتنوجوابونه ورکړی

ا - أَيْنَ بَيْتُكُمْ ؟

ب- مَا اسْمُكَ ؟

ج - مَنْ هَذَا الطَّالِبُ ؟

د - لِمَاذَا دَخَلْتَ كُلِّيَةَ الطِّبِّ ؟

ه - مَنْ هَؤُلَاءِ ؟

دوهم تمرین :

دلاندې هرې کلمې ضد (عکس) ولیکی

كَبِيرَةٌ - بَعِيدَةٌ - مُتْعَبٌ - جَالِسَةٌ

دریم تمرین -

لاندې کلمې په جملوکې استعمال کړی .

مَائِدَةٌ - طَبَقٌ - كُوبٌ - أَنَا - هُوَ - صَدِيقٌ - خُبْزٌ

څلورم تمرین :-

لاندې جملې بشپړې کړی :

ا - فِي الْأَطْبَاقِ . . . . . . وَ . . . . . . وَ . . . . . .

ب- اَلْأَطْبَاقُ وَالْأَكْوَابُ فَوْقَ . . . . . .

ج - أَصْنَافُ الطَّعَامِ . . . . . . وَالْأَسْعَارُ . . . . . .

د - . . . . . . طَازَجَةٌ و . . . . . . اَلْمَاءُ نَظِيفَةٌ .

ه - اَلطَّبَّاخُ . . . . . . وَالْعُمَّالُ . . . . . .

(c) ketabton.com: The Digital Library



## اَلدَّرْسُ الثَّالِثُ وَالثَّلاثُونَ

دری دیرشم درس

نَبِيل مَرِيضٌ

نبيل ناروغه دی

نَبِيلٌ مَرِيضٌ . أَبُوهُ يَتَكَلَّمُ فِي التِّلِيفُونِ .

نبیل ناروغ دی . پلارئی په تلیفون کی خبری کوی .

سَالِمٌ : آلُو .. دُكْتُور حَامِد . أُحْضُرْ بِسُرْعَةٍ . نَبِيلٌ مَرِيضٌ .

سالم : هلو ...... ډاکتر حامد ، زر راشه . نبيل مريض دی

وَجْهُهُ أَصْفَرُ . وَجِسْمُهُ سَاخِنٌ . وَحَالَتُهُ سَيِّئَةٌ .

رنگ ئی زیړ دی . بدن ئی گرم دی . حالت ئی خراب دی .

(c) ketabton.com: The Digital Library



أُمُّ نَبِيلٍ تَبْكِي :
دنبیل مور ژاړی .

وَجْهُهَا أَصْفَرُ .
مخ ئې زیړ دی

وَدُمُوعُهَا نَازِلَةٌ .
اوښکې یې روانې دي .

وَحَالَتُهَا سَيِّئَةٌ .
حالت ئې خراب دی

أَصْدِقَاءُ نَبِيلٍ جَالِسُونَ .
دنبیل ملګري ناست دي.

وَجُوهُهُمْ أَصْفَرُ .
دهغو مخونه زیړدي .

وَدُمُوعُهُمْ نَازِلَةٌ .
او او ښکې ئې بهیږی .

وَحَالَتُهُمْ سَيِّئَةٌ .
حالتونه ئې خراب دي

(c) ketabton.com: The Digital Library



اَلطَّبِيبُ : مَاذَا عِنْدَكَ يَا نَبِيلُ

ډاکتر : په څه ناروغه ئې نبيله ؟

نَبِيل : جِسْمِي سَاخِنٌ . وَقَلْبِي ضَعِيفٌ . وَحَالَتِي سَيِّئَةٌ .

نبيل :بدن مى گرم دى زړه مى كمزورى دى .او حالت مى خراب دى.

اَلطَّبِيبُ : لَا يَا نَبِيلُ .

ډاکتر : داسې نه ده نبيله.

جِسْمُكَ سَلِيمٌ . وَقَلْبُكَ قَوِيٌّ .

بدن دې جوړ دى. اوزړه دې قوى دى.

(c) ketabton.com: The Digital Library



اَلطَّبِيبُ : لَا تَخَافِي يَا سَيِّدَتِي . إِبْنُكِ سَلِيمٌ . لَا تَخَافِي .

**ډاکتر : مه ويريږه بي بي جاني زوی دی جوړدی . مه ويريږه.**

صِحَّتُكِ غَالِيَةٌ . وَعَيْنُكِ غَالِيَةٌ . لَا تَبْكِي يَا سَيِّدَتِي .

**ستاصحت گران دی . ستا سترگی گرانی دی . مه ژاړه .**

سَالِمٌ : يَا دُكْتُور حَامِد .

**سالم : ډاکتر حامده .**

بَيْتُنَا صِحِّيٌّ . وَشَمْسُنَا جَمِيلَةٌ . وَنَوَافِذُنَا وَاسِعَةٌ .

**زمونږ کور صحی دی او لمر مو ښکلی دی**

لِمَاذَا يَمْرَضُ نَبِيل ؟

**نو ولی نبيل ناروغه کيږی؟**

اَلطَّبِيبُ : صَحِيحٌ يَا أُسْتَاذُ سَالِم .

ډاکتر: استاذ سالم سمه ده

بَيْتُكُمْ صِحِّيٌّ .

کور مو صحي دی

وَشَمْسُكُمْ جَمِيلَةٌ .

لمر مو ښکلی دی

وَنَوَافِذُكُمْ وَاسِعَةٌ .

او کړکی مو پراخې دی

نَبِيلٌ مَرِيضٌ مِنَ الْبَرْدِ .

نبیل یخنی ناروغه کړی دی .

اَلْبَرْدُ شَدِيدٌ فِي بَيْتِكُمْ .

ستاسی کورکی یخنی ډیره زیاته ده .

أَغْلِقُوا النَّوَافِذَ عِنْدَ النَّوْمِ .

دخوب په وخت کی کړکی بندی کړی.

(c) ketabton.com: The Digital Library



نیبیل وویل:

جِسْمِي سَاخِنٌ .          وَقَلْبِي ضَعِيفٌ .          وَحَالَتِي سَيِّئَةٌ .

بدن می تود دی          زړه می کمزوری دی .          حالت می بد دی.

پلارئی وویل :

بَيْتُنَا صِحِّيٌّ .          وَشَمْسُنَا جَمِيلَةٌ .          وَنَوَافِذُنَا وَاسِعَةٌ .

زموږ کور صحی دی . لمر موښایسته دی          . اوکړکی موپراخی دی.

توجه وکړی : څه وخت چه نبیل خبري کوی او خبره خپل ځان ته متوجه کوی نود هری کلمی په آخرکی (ـی) زیاتـوی اوپه لاندی ډول لیکل کیږی

جِسْمِي ، قَلْبِي ، حَالَتِي.

لکن څه وخت چه پلار ئی خبري کوی دخپل ځان او کورنی په باره کی خبری کوی نود(نا) حرف دکلمی په اخیرکی زیاتـوی او په لاندی توګه لوستل کیږی،

بَيْتُنَا ، شَمْسُنَا ، نَوَافِذُنَا

دملکیت ضمیرونه:

= نَا

ـی = چه دیوه غږ یدونکی(مفرد متکلم) دپاره راځی لکه جسمی

نا = چه دڅو غږیدونکو (جمع متکلم) دپاره راځی لکه بیتنا

(c) ketabton.com: The Digital Library



توجه وکړی: څه وخت چه مفرد مذکر مخاطب ته څه شی منسوبوو .
نو دکلمی په اخیرکی (کـ) بوځای کوو. اوپه لاندی توګه
لیکل کیږی :
جِسْمُكَ سَلِيمٌ . وَقَلْبُكَ قَوِيٌّ .

همدارنګه څه وخت چه مفرد مؤنث مخاطب ته څه شی منسوبوو.
نود کلمی په اخیرکی (كِ) زیاتوو .چه په لاندی ډول لیکل کیږی.

اِبْنُكِ سَلِيمٌ . صِحَّتُكِ غَالِيَةٌ . وَعَيْنُكِ غَالِيَةٌ .

اوڅه وخت چه جمع مذکر مخاطب ته څه منسوبوو نودکلمی په اخیرکی
(كُمْ) زیاتوو . لکه :-

بَيْتُكُمْ صِحِّيٌّ . وَشَمْسُكُمْ جَمِيلَةٌ . وَنَوَافِذُكُمْ وَاسِعَةٌ .

مفرد مذکر مخاطب دپاره = كَ
مفرد مؤنث مخاطبی دپاره = كِ
جمع مذکر مخاطب دپاره = كُمْ

(c) ketabton.com: The Digital Library



توجه وکړی:څه وخت چه مفرد مذکر غائب ته دڅه نسبت کوو .
نواخر دکلمی کی( ـهُ)حرف زیاتیږی اوپه لاندی ډول لیکل کیږی:-

وَجْهُهُ أَصْفَرُ .　　وَجِسْمُهُ سَاخِنٌ .　　وَحَالَتُهُ سَيِّئَةٌ .

همدرانګه څه وخت چه مفرد مؤنث غایبی ته دڅه نسبت کوو په اخیرکی (هَا) ورزیاتوو .اوپه لاندی ډول لیکل کیږی :-

وَجْهُهَا أَصْفَرُ .　　وَحَالَتُهَا سَيِّئَةٌ .　　وَدُمُوعُهَا نَازِلَةٌ .

او څه وخت چه جمع مذکر غائب ته دڅه شی نسبت کوونو په اخیرکی (هم) ورزیاتوو اوپه دی ډول لیکل کیږی

وَجْهُهُمْ أَصْفَرُ .　　وَدُمُوعُهُمْ نَازِلَةٌ .　　وَحَالَتُهُمْ سَيِّئَةٌ.

مفرد مذکر غایب دپاره = ـهُ

مفرد مؤنث غایبی دپاره = هَا

جمع مذکر غایب دپاره = هُمْ

(c) ketabton.com: The Digital Library



## تمرینونه

**لمړی تمرین:-**

**لاندې کلمې په مناسبو جملوکې استعمال کړی.**

أَصْفَرُ - سَاخِنٌ - بِسُرْعَةٍ - تَبْكِي - صِحِّيٌّ - اَلشَّمْسُ -
اَلنَّوَافِذُ - اَلْبَرْدُ - اَلنَّوْمُ - ضَعِيفٌ - دُكْتُور - صِحَّتُكَ

**لاندې جملوکې خالې ځایونه مناسبو کلمو باندې ډک کړی :-**

ا - سَالِم يتكلَّمَ فِي . . . . . .
ب- نَبِيل مَرِيضٌ وَوَجْهُهُ . . . . . .
ج - أُمُّ نَبِيل . . . . . .
د - قَالَ الطَّبِيبُ : جِسْمُكَ . . . . . .
ه - أَغْلَقَ سَالِم النَّوَافِذَ عِنْدَ . . . . . .

( النَّوْم - التِّلِيفُون - تَبْكِي - أَصْفَرُ - سَلِيمٌ )

**دریم تمرین :-**

**لاندې جملې پوره کړی :**

١ - . . . . . قَوِيٌّ .
٢ - . . . . . سَلِيمٌ .
٣ - . . . . . ضَعِيفٌ .
٤ - . . . . . سَيِّئَةٌ .
٥ - . . . . . نَظِيفَةٌ .
٦ - جِسْمِي . . . . . .
٧ - قَلْبِي . . . . . .
٨ - شَمْسُنَا . . . . . .
٩ - نَوَافِذُنَا . . . . . .
١٠ - صِحَّتِي . . . . . .

**څلورم تمرین :-**

**لاندې جملې په جګ اوازسره ولولی :-**

١ - بَيْتِي وَاسِعٌ .
٢ - بَيْتُكَ وَاسِعٌ .
٣ - بَيْتُكِ وَاسِعٌ .
٤ - بَيْتُهُ وَاسِعٌ .
٥ - بَيْتُهَا وَاسِعٌ .
٦ - بَيْتُكُمْ وَاسِعٌ .

(c) ketabton.com: The Digital Library

# اَلدَّرْسُ الرَّابِعُ وَالثَّلَاثُونَ

## څلور دیرشم درس

### قَصْرٌ جَمِيلٌ

### ښکلی ماڼی

سَالِم : اُنْظُرِي يَا هِنْد هَذَا قَصْرُ الدُّكْتُورِ حَامِدٍ .

سالم : هند وګوره ! دا د ډاکتر حامد ماڼی ده .

هِنْد : قَصْرٌ جَمِيلٌ يَا سَالِم . هند : سالم دا ماڼی ښکلی ده.

سَالِم : فِي هَذَا الْقَصْرِ : سالم : په دې ماڼی کې :

بَابٌ رَئِيسِيٌّ وَبَابٌ جَانِبِيٌّ وَسُورٌ حَدِيدِيٌّ .

لويه دروازه ده . وړه (اړخيزه) دروازه ده . او د اوسپنې ديوال دی.

(c) ketabton.com: The Digital Library



هِنْدُ : وَأَمَامَ الْبَابِ

هند: د دروازی په مخکي

مِصْبَاحٌ كَهْرَبِيٌّ وَصُنْدُوقٌ خَشَبِيٌّ

برقي گروپ دی اود لرگي صندوق دی

سَالِمُ : وَفِي الْقَصْرِ يَا هِنْدُ

سالم : هنداوپه دی ماڼی کی

جُنَيْنَةٌ وَاسِعَةٌ وَنَافُورَةٌ جَدِيدَةٌ .

پراخه باغچه ده . اونوی فواره ده

وَفِي الْقَصْرِ كَذَلِكَ

همدارنگه په دی ماڼی کی

مِظَلَّةٌ خَشَبِيَّةٌ وَأَشْجَارٌ مُثْمِرَةٌ .

دلرگو څپره ده . او دمیوو ونی دی .

نِهَادُ : قَصْرٌ جَمِيلٌ يَا أَبِي .

نهاد : پلاره داماڼی ښکلی ده.

(c) ketabton.com: The Digital Library



هِنْد : اُنْظُرْ يَا سَالِم .
هند : ای سالم وګوره.

اَلْبَابُ الرَّئِيسِيُّ مَفْتُوحٌ ، وَالْبَابُ الْجَانِبِيُّ مُغْلَقٌ .
لویه دروازه خلاصه ده . او وړه دروازه بنده ده.

اَلسُّورُ الْحَدِيدِيُّ مُرْتَفِعٌ . وَالْمِصْبَاحُ الْكَهْرَبِيُّ جَمِيلٌ .
داوسپنې دیوال جګ دی . اود بجلی ګروپ ښاسته دی .

نَبِيلٌ : وَمَا هَذَا الصُّنْدُوقُ الْخَشَبِيُّ ؟
نبیل: دادلرګی صندق دڅه دپاره دی ؟

سَالِمٌ : اَلصُّنْدُوقُ الْخَشَبِيُّ لِلْبَرِيدِ يَا نَبِيل .
سالم : نبیل داصندق دپوستې دپاره دی .

(c) ketabton.com: The Digital Library



نِهَاد : هَلْ دَخَلْتَ هَذَا الْقَصْرَ يَا أَبِي ؟

نهاد : پلاره دی ماڼی ته ننوتلی ئی ؟

سَالِم : نَعَمْ ، دَخَلْتُ هَذَا الْقَصْرَ ، لِأَزُورَ تِلْمِيذِي الدُّكْتُورَ حَامِداً .

سالم : هو ، دی ماڼی ته ننوتلی یم ، ترڅو خپل شاګرد ډاکتر حامد وګورم

يَا سَلَامُ يَا نِهَاد !

ای نهاد !

اَلْحَدِيقَةُ الْكَبِيرَةُ بَدِيعَةٌ . وَالنَّافُورَةُ الْجَدِيدَةُ بَدِيعَةٌ .

لوی باغ په زړه پوری دی . اونوی فواره په زړه پوری ده

وَالْمِظَلَّةُ الْخَشَبِيَّةُ جَمِيلَةٌ . وَالْأَشْجَارُ الْمُثْمِرَةُ كَثِيرَةٌ .

دلرګو څپره ښکلی ده . اودمیوو ونی ډیری دی.

قَصْرٌ جَمِيلٌ يَا نِهَاد .

نهاد: دا ښکلی ماڼی ده .

(c) ketabton.com: The Digital Library



لاندی جمل ولولی او دجملو ترکیب ته متوجه شی.

اَلْبَابُ الرَّئِیسِیُّ مَفْتُوحٌ .          اَلْبَابُ الْجَانِبِیُّ مُغْلَقٌ .

اَلسُّورُ الْحَدِیدِیُّ مُرْتَفِعٌ .          اَلْمِصْبَاحُ الْکَهْرَبِیُّ جَمِیلٌ .

اَلصُّنْدُوقُ الْخَشَبِیُّ لِلْبَرِیدِ.

توجه وکړی: لهلاندی جملو نخخه هوجمله له مبتدأ اوخبر نه جوړه شوی

| مبتدا | خبر |
| --- | --- |
| اَلْبَابُ | مَفْتُوحٌ |
| اَلسُّورُ | مُرْتَفِعٌ |

توجه وکړی : دهر مبتدأ نه وروسته صفت راغلی دی.

اَلْبَابُ الرَّئِیسِیُّ . .
اَلسُّورُ الْحَدِیدِیُّ . .

(c) ketabton.com: The Digital Library



**لاندې جملې ولولئ او دجملو ترکیب ته متوجه شئ :**

اَلْحَدِيقَةُ الْكَبِيرَةُ بَدِيعَةٌ .　　　اَلنَّافُورَةُ الْجَدِيدَةُ بَدِيعَةٌ .

اَلْمِظَلَّةُ الْخَشَبِيَّةُ جَمِيلَةٌ .　　　اَلْأَشْجَارُ الْمُثْمِرَةُ كَثِيرَةٌ .

**توجه وکړئ : پاسنی جملې دمبتدأ (مبتدأ أو صفت) او خبر نه جوړې شوی دی .**

**همدرانگه باید مخبر شی څه وخت چه مبتدأ مؤنث وی صفت او خبر دمؤنث په دی علامه (ـة) پای ته رسیږی.**

(c) ketabton.com: The Digital Library

## تمرینونه

**لمړی تمرین:-لاندی جملی دقوس په داخل کی مناسبو کلمو باندی ډکی کړی.**

( خَشَبِيٌ - كَهْرَبِيٌ - وَاسِعَةٌ - مُثْمِرَةٌ - خَشَبِيَّةٌ )

ا - فِي الْقَصْرِ حَدِيقَةٌ . . . . . .

ب - هَذِهِ مِظَلَّةٌ . . . . . .

ج - فِي الْحَدِيقَةِ أَشْجَارٌ . . . . . .

د - هَذَا مِصْبَاحٌ . . . . . .

ه - أَمَامَ الْبَابِ صُنْدُوقٌ . . . . . .

**دوهم تمرین :دلاندی کلمو عکس (ضد) ولیکی :**

مَفْتُوحٌ - أَمَامَ - صَغِيرٌ

**دریم تمرین :-**

**دلاندی جملو خالی ځایونو ته مناسب صفتونه پیدا کړی:**

ا - اَلْبَابُ . . . . . وَاسِعٌ .

ب - اَلسُّورُ . . . . . جَمِيلٌ .

ج - اَلصُّنْدُوقُ . . . . . لِلْبَرِيدِ .

د - اَلْقَصْرُ . . . . . جَدِيدٌ .

ه - اَلنَّوَافِذُ . . . . . مَفْتُوحَةٌ .

و - اَلْخَادِمُ . . . . . مَحْبُوبٌ .

ز - اَلْمَطْعَمُ . . . . . نَظِيفٌ .

**څلورم تمرین :-**

**لاندی جملی دقوسونو نه په مناسبو کلمو پوره کړی :**

ا - زُهُورُ الْمَطْعَمِ . . . . . ( بَدِيعَةٌ - نَظِيفَةٌ - سَيِّئَةٌ )

ب - اَلْمِظَلَّةُ الْخَشَبِيَّةُ . . . . . ( مُثْمِرَةٌ - جَمِيلَةٌ - كَثِيرَةٌ )

ج - اَلْهَوَاءُ . . . . . ( كَبِيرَةٌ - وَاسِعٌ - لَطِيفٌ )

د - اَلْبَبْغَاءُ . . . . . ( قَبِيحَةٌ - جِيرَانٌ - جَمِيلَةٌ )

(c) ketabton.com: The Digital Library

# اَلدَّرْسُ الْخَامِسُ وَالثَّلَاثُونَ

## پنځه دیرشم درس

هَذَا بَيْتٌ وَاسِعٌ . وَهَذَا بَيْتٌ ضَيِّقٌ .

دا لوی (پراخ) کوردی. داکور ورو کی (تنګ) دی.

اَلْبَيْتُ الْوَاسِعُ بَيْتٌ مُرِيحٌ . وَالْبَيْتُ الضَّيِّقُ بَيْتٌ مُتْعِبٌ .

لوی کور ارامونکی کوردی اوتنګ کور ستومانه کونکی کوردی.

(c) ketabton.com: The Digital Library



أُنْظُرْ إِلَى الصُّوَرِ ، وَاقْرَإِ الْجُمَلَ

عکسونو ته وګوره ، او جملې ولوله :

هَذَا رَجُلٌ طَوِيلٌ .

داسړی اوږددی.

مَحْمُود رَجُلٌ طَوِيلٌ .

محمود اوږد سړی دی

وَهَذَا وَلَدٌ قَصِيرٌ .

اوداهلک لنډ دی.

وَأَشْرَف وَلَدٌ قَصِيرٌ .

او اشرف لنډ هلك دی.

هَذَا طَائِرٌ جَمِيلٌ .

دابښکلی مرغه دی.

اَلْبُلْبُلُ طَائِرٌ جَمِيلٌ .

بلبل ښکلی مرغه دی

وَهَذَا طَائِرٌ قَبِيحٌ .

او دابد رنګه مرغه دی.

وَالْغُرَابُ طَائِرٌ قَبِيحٌ .

اوکارغه بد رنګه مرغه دی.

(c) ketabton.com: The Digital Library



اُنظُرْ إلَى الصُّوَرِ ، وَاقْرَإِ الْجُمَلَ :
عکسونوته وګوره . او جملې ولوله :

هٰذَا أَسَدٌ قَوِيٌّ .
داقوي زمری دی

الْأَسَدُ حَيَوَانٌ كَبِيرٌ .
زمری لوی حیوان دی.

وَهٰذَا قِطٌّ ضَعِيفٌ .
او داکمزوری پیشو ده

وَالْقِطُّ حَيَوَانٌ صَغِيرٌ .
او پیشو وړوکی حیوان دی.

هٰذَا فَلَّاحٌ نَشِيطٌ .
دا فعال دهقان دی .

وَهٰذَا فَلَّاحٌ كَسْلَانٌ.
اودالټ دهقان دی.

اَلْفَلَّاحُ النَّشِيطُ رَجُلٌ مَحْبُوبٌ . وَالْفَلَّاحُ الْكَسْلَانُ رَجُلٌ مَكْرُوهٌ .
فعال دهقان دهرچا خوښ دی . لټ دهقان دچا ښه نه راځي.

(c) ketabton.com: The Digital Library



لاندې جملې ولولئ او دجملو ترکیب ته ځیرشئ :

هَذَا بَيْتٌ وَاسِعٌ . هَذَا بَيْتٌ ضَيِّقٌ .

مَحْمُود رَجُلٌ طَوِيلٌ . أَشْرَف وَلَدٌ قَصِيرٌ .

هَذَا طَائِرٌ جَمِيلٌ . هَذَا طَائِرٌ قَبِيحٌ .

اَلْأَسَدُ حَيَوَانٌ كَبِيرٌ . اَلْقِطُّ حَيَوَانٌ صَغِيرٌ .

هذا أَسَدٌ قَوِيٌّ . هَذا قِطٌّ ضَعِيفٌ .

هذا فَلَّاحٌ نَشِيطٌ . هَذا فَلَّاحٌ كَسْلَانٌ.

توجه وکړئ هره جمله ←دوبرخو تخته جوړه شوې ده.

هَذا بَيْتٌ وَاسِعٌ

ددې جملې دوهمه برخه هم ددوو کلمو تخته جوړه شوې ده.
چه دو همه کلمه دلړی کلمې صفت کوي.

بَيْتٌ وَاسِعٌ
کور پراخ
چه پراخ دکور صفت دی.

(c) ketabton.com: The Digital Library



لاندی جملی ولولی او دجملو ترکیب ته ځیرشی :

اَلْبَیْتُ الْوَاسِعُ بَیْتٌ مُرِیحٌ .  اَلْبَیْتُ الضَّیِّقُ بَیْتٌ مُتْعِبٌ .

توجه وکړی : پاسنی جملی ددوو برخو نخخه جوړی شوی دی .

اَلْفَلَّاحُ النَّشِیطُ رَجُلٌ مَحْبُوبٌ .  اَلْفَلَّاحُ الْکَسْلَانُ رَجُلٌ مَکْرُوهٌ .

همدارانگه ددی جملو هره برخه ددوو کلمو نخخه جوړه شوی ده.

اَلْبَیْتُ الْوَاسِعُ  بَیْتٌ مُرِیحٌ

چه دوهمه کلمه دلمړی کلمی صفت دی.

اَلْبَیْتُ الْوَاسِعُ  بَیْتٌ مُرِیحٌ

لاندی جملی ولولی :

هَٰذِهِ حُجْرَةٌ وَاسِعَةٌ  وَهَٰذِهِ حُجْرَةٌ ضَیِّقَةٌ .

دا لویه (پراخه)کوټه ده.  او دا وړه(تنگه)کوټه ده.

اَلْحُجْرَةُ الْوَاسِعَةُ حُجْرَةٌ مُرِیحَةٌ .  اَلْحُجْرَةُ الضَّیِّقَةُ حُجْرَةٌ مُتْعِبَةٌ .

پراخه کوټه ارامونکی کوټه وی.  تنگه کوټه ستومانونکی کوټه وی.

(c) ketabton.com: The Digital Library



هٰذِهِ بِنْتٌ طَوِيلَةٌ .    وَهٰذِهِ بِنْتٌ قَصِيرَةٌ .

دا نجلۍ لوړه ده    اودا نجلۍ ټيټه ده.

نِهَاد بِنْتٌ طَوِيلَةٌ .    وَإِلْهَام بِنْتٌ قَصِيرَةٌ .

نهاد لوړه نجلۍ ده    او الهام ټيټه نجلۍ ده.

هٰذِهِ سَاعَةٌ جَدِيدَةٌ .    وَهٰذِهِ سَاعَةٌ قَدِيمَةٌ .

دا نوی ساعت دی.    اودازوړساعت دی.

اَلسَّاعَةُ الْجَدِيدَةُ هَدِيَّةٌ جَمِيلَةٌ .    وَالسَّاعَةُ الْقَدِيمَةُ هَدِيَّةٌ رَخِيصَةٌ.

نوی ساعت ښکلی تحفه وی .    او زوړ ساعت ارزانه تحفه وی.

توجه وکړی :هغه صفتونه چه پس جملوکی راغلی (کوسو لاندی چه خط کش شوی دی) مؤنث دی . محکه چه دمؤنثو کلمو دپاره استعمال شوی دی.

(c) ketabton.com: The Digital Library



## تمرینونه

لمړی تمرین : لاندې کلمې په مناسبو جملوکی استعمال کړی.

ضَيِّقٌ - طَائِرٌ - رَجُلٌ - قَصِيرٌ - وَلَدٌ - اَلْفَلَّاحُ - كَسْلَانُ - كَبِيرٌ
ضَعِيفٌ - مَكْرُوهٌ - حُجْرَةٌ .

دوهم تمرین :- دلاندې کلمو عکس (ضد) ولیکی :

ضَيِّقٌ - مُرِيحَةٌ - كَسْلَانُ - قَبِيحٌ - ضَعِيفٌ - طَوِيلٌ - مَحْبُوبٌ -
صَغِيرٌ - قَدِيمَةٌ .

دریم تمرین :- دلاندې کلمو مؤنث ولیکی :-

جَدِيدٌ - طَوِيلٌ - قَصِيرٌ - قَدِيمٌ - وَاسِعٌ - جميلٌ - بَدِيعٌ - خَشَبِيٌّ -
هَذَا - مَحْبُوبٌ .

څلورم تمرین :

دلاندې جملو خالی ځایونه دهغو دمقابلو قوسونوڅخه په مناسبوکلمو باندې ډک کړی .

ا - هَذَا دُكَّانٌ . . . . . ( كَسْلَانُ - قَوِيٌّ - جَدِيدٌ )

ب - هَؤُلَاءِ عُمَّالٌ . . . . . ( مُؤَدَّبٌ - مُؤَدَّبُونَ )

ج - هَذِهِ سَاعَةٌ . . . . . ( قَصِيرَةٌ - صَغِيرَةٌ - وَاسِعَةٌ )

د - هَذِهِ الْحُجْرَةُ . . . . . ( ضَعِيفَةٌ - مُثْمِرَةٌ - ضَيِّقَةٌ )

ه - اَلْفَلَّاحُ النَّشِيطُ . . . . . ( مَكْرُوهٌ - نَظِيفٌ - مَحْبُوبٌ )

و - اَلْأَسَدُ حَيَوَانٌ . . . . . ( ضَعِيفٌ - قَوِيٌّ - مُرِيحٌ )

(c) ketabton.com: The Digital Library

# اَلدَّرْسُ السَّادِسُ وَالثَّلاثُونَ

## شپږ دیرشم درس

## مَطَارٌ

## هوائي ډګر (میدان)

نَبِيلٌ يَقُولُ : أَنَا أُرِيدُ رُؤْيَةَ الْمَطَارِ ، وَنِهَاد تُرِيدُ رُؤْيَةَ الْمَطَارِ .

نبیل وایی : زه غواړم چه هوائی(میدان) ډګروګورم.اونهاد غواړی چه هوائی میدان وګوری.

هَيَّا نَذْهَبْ إِلَى الْمَطَارِ يَا أَبِي .

پلاره راځی چه هوائی میدان ته ولاړشو.

سَالِمٌ : رَاشِد يُسَافِرُ يَوْمَ الْجُمعَةِ الْمُقْبِلَ .

سالم : راشددراتلونکی جمعی په ورځ سفر کوی.

نَذْهَبُ إِلَى الْمَطَارِ مَعَ رَاشِد .

راشد سره هوائی میدان ته ځو

(c) ketabton.com: The Digital Library



  

هَذِهِ طَائِرَةٌ . وَهَذَا طَيَّارٌ . وَهَذِهِ مِرْوَحَةٌ .

دا الوتكه ده اودايیلوټ دی. او داپکی (څرخ) دی

  

هَذَا مُسَافِرٌ . وَهَذِهِ حَقِيبَةٌ . وَهَذَا مِنْدِيلٌ .

دا مسافردی اودابکس دی. اودادستمال دی.

  

هٰؤُلَاءِ مُسَافِرُونَ . هَذِهِ حَقَائِبُ . هَذِهِ مَنَادِيلُ .

هغوی مسافردی اودا بکسونه دی . اودادستمالونه دی.

اَلطَّائِرَةُ تَقِفُ فِي الْمَطَارِ .

الوتکه هوائي (میدان) ډګرکي دریږي.

رَاشِدٌ يَذْهَبُ إِلَى الطَّائِرَةِ .

راشد الوتکې ته ځي

رَاشِدٌ يَحْمِلُ حَقِيبَةً صَغِيرَةً .

راشد د ځان سره وړوکی بکس وړی

اَلْمُسَافِرُونَ يَحْمِلُونَ حَقَائِبَ صَغِيرَةً .

مسافران له ځانو سره واړه بکسونه وړي.

اَلْمُسَافِرُونَ يَجْلِسُونَ فِي الطَّائِرَةِ .

مسافران الوتکه کي کيني.

اَلطَّيَّارُ يَرْكَبُ الطَّائِرَةَ .

پیلوټ الوتکه کی سپریږی

اَلْعُمَّالُ يَجُرُّونَ .
گارگران زینه کش کوی.

اَلْمِرْوَحَةُ تَدُورُ بِسُرْعَةٍ .
دالوتکی څرخ په تیزی سره تاوېږی.

اَلطَّائِرَةُ تَجْرِى عَلَى الْأَرْضِ .
الوتکه دځمکی دپاسه روانه ده.

اَلطَّائِرَةُ تَطِيرُ فِى الْجَوِّ .
الوتکه هواء کی الوزی.

اَلْأَصْدِقَاءُ يُلَوِّحُونَ بِمَنَادِيلِهِمْ .
ملگری خپل دستمالونه خوځوی .

اَلْأَصْدِقَاءُ يَرْجِعُونَ مِنَ الْمَطَارِ .
ملگری دهوای میدان نه بیرته راگرځی

(c) ketabton.com: The Digital Library



لاندي جملې ولولئ. او دجملو ترکيب ته ځير شئ.

نَبِيلٌ يَقُولُ     اَلْمُسَافِرُ يَحْمِلُ

اَلطَّيَّارُ يَرْكَبُ     اَلطَّيَّارُ يَجْلِسُ

توجه وکړئ : پاسنی جملې له مبتدأ (اسم مذکر) او داسې فعل څخه جوړې شوي دي چه دغه فعل اوکاردحال په زمانه کې پيښ شوي دی .
همدارنګه توجه وکړئ څه وخت چه مبتدأ مذکر نوم وی.
فعل د (یـ) په حرف سره شروع کيږي.
مثال :

يَقُولُ – يَحْمِلُ

که چيرې مبتدأ مؤنث اسم وی فعل د (تـ) په حرف پيل کيږي .

اَلطَّائِرَةُ تَقِفُ     اَلطَّائِرَةُ تَجْرِی     اَلطَّائِرَةُ تَطِيرُ

او څه وخت مبتدأ جمع مذکر اسم وی فعل په (یـ) پيل کيږي او په (ون) پای ته رسيږي .
مثال :

اَلْمُسَافِرُونَ يَجْلِسُونَ     اَلْأَصْدِقَاءُ يَلُوحُونَ     اَلْعُمَّالُ يَجْرُونَ

(c) ketabton.com: The Digital Library



## تمرينونه

لمړی تمرين :دلاندی کلمو جمع وليکی.

مُسَافِرٌ - حَقِيبَةٌ - مِنْدِيلَ - طَائِرَةٌ - شَجَرَةٌ - صَدِيق - صُورَةٌ - كُوبٌ - أَنَا - هُوَ - أَنْتَ

دوهم تمرين :- لاندی پوښتنوته جواب ورکړی . :

ا - أَيْنَ يُسَافِرُ رَاشِدٌ ؟

ب - مَتَى يُسَافِرُ رَاشِد ؟

ج - مَاذَا يَحْمِلُ رَاشِد ؟

د - أَيْنَ يَجْلِسُ الْمُسَافِرُونَ ؟

ه - أَيْنَ تَقِفُ الطَّائِرَةُ ؟

دریم تمرين :- دلاندی جملو خالی ځايونه دمقابلو قوسونو څخه په مناسبو کلمو باندی ډکی کړی .

١ - اَلْأَصْدِقَاءُ يُلَوِّحُونَ . . . . . ( بِالْحَقَائِبِ - بِالْمَنَادِيلِ - بِالصُّوَرِ )

٢ - اَلْعُمَّالُ . . . . . ( يَجْرُونَ - يُسَافِرُونَ - يَرْجِعُونَ )

٣ - اَلطَّائِرَةُ تَطِيرُ فِي . . . . . ( الْأَرْضِ - الْجَوِّ - الْحُجْرَةِ )

٤ - اَلْمُسَافِرُونَ يَجْلِسُونَ فِي . . . . ( الْمَطْعَمِ - الطَّائِرَةِ - الْبَيْتِ )

څلورم تمرين : په لاندی خالی ځايونوکی دلاندی قوس نه مناسبی کلمی وليکی.

( هَؤُلَاءِ - هُمْ - هَذَا - هَذِهِ - هُوَ - هِيَ )

. . . . . مُسَافِرُونَ . . . . . . مَنَادِيلُ .

. . . . . طَائِرَةٌ . . . . . . طَائِرٌ .

. . . . . مِنْدِيلٌ . . . . . . أَصْدِقَاءُ .

. . . . . مِرْوَحَةٌ . . . . . . طَيَّارٌ .

(c) ketabton.com: The Digital Library

## اَلدَّرْسُ السَّابِعُ وَالثَّلَاثُونَ

### اوه دیرشم درس

جَامِعٌ

**مسجد (جومات)**

هَذَا الْجَامِعُ فِي قَرْيَةِ مَحْمُودٍ.

**دامسجد دمحمود په کلی کی دی.**

فِي هَذَا الْجَامِعِ:

**په دي مسجد کی:**

مِئْذَنَةٌ عَالِيَةٌ

**جگه مناره ده.**

وَمُؤَذِّنٌ نَشِيطٌ .

**او مؤذن ئی فعال (تکړه) دی.**

(c) ketabton.com: The Digital Library



اَلْفَجْرُ ظَهَرَ .

سهار راوخوت

اَلْمُؤَذِّنُ ذَهَبَ إِلَى الْجَامِعِ .

مؤذن جومات ته لاړ .

اَلْمُؤَذِّنُ طَلَعَ الْمِئْذَنَةَ .

مؤذن اذان خانی (مناری) ته پورته شو.

اَلْمُؤَذِّنُ أَذَّنَ لِلْفَجْرِ .

مؤذن دسهار اذان وکړ .

اَللّٰهُ أَكْبَرُ . . . اَللّٰهُ أَكْبَرُ .

خدای پاك لوی دی ..... خدای پاك لوی دی

حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ . .

لمانځه ته راشئ.

(c) ketabton.com: The Digital Library



مَحْمُودٌ سَمِعَ الْمُؤَذِّنَ .

**محمود دمؤذن اوازواوریده.**

مَحْمُودٌ قَامَ مِنَ النَّوْمِ .

**محمود دخوب نه پاخیده.**

مَحْمُودٌ خَرَجَ مِنَ الْبَيْتِ .

**محمود دکورنه دباندی ووت.**

مَحْمُودٌ ذَهَبَ إِلَى الْجَامِعِ .

**محمود جومات ته ولاړ.**

مَحْمُودٌ تَوَضَّأَ .

**محمود اودس وکړ.**

مَحْمُودٌ صَلَّى الْفَجْرَ .

**محمود دسهار لمونځ وکړ.**

(c) ketabton.com: The Digital Library



مَحْمُودٌ ذَهَبَ إِلَى الْحَقْلِ .

محمود پټی ته ولاړ.

مَحْمُود أَخْرَجَ الْبَقَرَةَ مِنَ الْحَظِيرَةِ .

محمود دغوجل څخه غوا وویستله.

مَحْمُودٌ رَبَطَ الْبَقَرَةَ فِي الْمِحْرَاثِ .

محمود غوا پسی ایوه وتړله.

الْبَقَرَةُ جَرَّتِ الْمِحْرَاثَ .

غوا ایوه کش کړه .

الْبَقَرَةُ تَعِبَتْ .

غوا ستړې شوه

الْبَقَرَةُ وَقَفَتْ تَسْتَرِيح .

غوا ودریده له چه دمه وکړي.

(c) ketabton.com: The Digital Library



زَوْجَةُ مَحْمُودٍ أَحْضَرَتِ الْغَدَاءَ .
دمحمود میرمنی (ښځی) ډوډی راوړه .

مَحْمُودٌ تَرَكَ الْمِحْرَاثَ .
محمود ایوه پرېښودله .

مَحْمُودٌ جَلَسَ فِي ظِلِّ شَجَرَةٍ .
محمود دونی سیوری لاندي کیناست

مَحْمُودٌ تَنَاوَلَ طَعَامَ الْغَدَاءِ .
محمود ډوډی وخوړله.

مَحْمُود جَرَّ الْبَقَرَةَ .
محمود غوا بوتله .

مَحْمُود رَبَطَ الْبَقَرَةَ فِي الْحَظِيرَةِ .
محمود غواپه غوجل کی وتړله.

(c) ketabton.com: The Digital Library



لاندې جملې ولولئ اود جملو ترکیب ته ځیرشئ.

اَلْمُؤَذِّنُ ذَهَبَ إِلَى الْجَامِعِ .    اَلْمُؤَذِّنُ طَلَعَ الْمِئْذَنَةَ .

مَحْمُودٌ قَامَ مِنَ النَّوْمِ .    مَحْمُودٌ ذَهَبَ إِلَى الْجَامِعِ .

مَحْمُودٌ تَرَكَ الْمِحْرَاثَ .    مَحْمُودٌ تَنَاوَلَ الْغَدَاءَ .

مَحْمُودٌ جَرَّ الْبَقَرَةَ .    مَحْمُودٌ رَبَطَ الْبَقَرَةَ فِي الْحَظِيرَةِ .

اَلْبَقَرَةُ جَرَّتِ الْمِحْرَاثَ .    اَلْبَقَرَةُ تَعِبَتْ .

توجه وکړئ : هریو د پاس جملو ځخه د مبتدأ او خبر نه جوړې شوی او خبر ئې فعل ماضي دی.

همدارنګه توجه وکړئ ځه وخت چه مبتدأ مؤنث وي فعل دمؤنث علامې (ت) پاندې پای ته رسیږي لکه.

اَلْبَقَرَةُ جَرَّتِ الْمِحْرَاثَ .

(c) ketabton.com: The Digital Library



## تمرینونه

لمړی تمرین : دلاندی کلمونه هره یوه کلمه په جمله کی استعمال کړی :

اَلْفَجْرُ - اَلْجَامِعُ - اَلْقَرْيَةُ - اَلْبَقَرَةُ - اَلْحَقْلُ - اَلْمِحْرَاثُ -
اَلْحَظِيرَةُ - اَلْغَدَاءُ - اَلْمِئْذَنَةُ - اَلْمُؤَذِّنُ .

دوهم تمرین :- لاندی جملوکی خالی ځایونه له مقابلو قوسونوڅخه په مناسبو صفتو نو باندی ډک کړی.

اَلْمِئْذَنَةُ . . . . . . ( هَادِئَةٌ - مُخَطَّطَةٌ - عَالِيَةٌ )
اَلْجَامِعُ . . . . . . ( جَدِيدٌ - وَاقِفٌ - كَبِيرٌ )
اَلْمُؤَذِّنُ . . . . . . ( مَحْبُوبٌ - نَشِيطٌ - مُخَطَّطٌ )
اَلْقَرْيَةُ . . . . . . ( قَرِيبَةٌ - بَدِيعَةٌ - مَرِيضٌ )

دریم تمرین :- لاندی جملی په مناسبو افعالو ډکی کړی.

اَلْفَجْرُ . . . . . . اَلطَّبِيبُ . . . . . .
اَلْمُؤَذِّنُ . . . . . . سَالِمٌ . . . . . .
اَلْفَلَّاحُ . . . . . . اَلطَّائِرَةُ . . . . . .
اَلْبَقَرَةُ . . . . . . اَلْأَصْدِقَاءُ . . . . . .
اَلطَّيَّارُ . . . . . . اَلْعُمَّالُ . . . . . .

څلورم تمرین :لاندی جملوکی خالی ځایونه په مناسبو نومو نو ډک کړی.

. . . تَقِفُ . . . . يَحْمِلُ الْحَقِيبَةَ . . . . تَجُرُّ الْمِحْرَاثَ .
. . . تَدُورُ . . . . يَجْلِسُونَ . . . . رَبَطَ الْبَقَرَةَ .

(c) ketabton.com: The Digital Library

# اَلدَّرْسُ الثَّامِنُ وَالثَّلاثُونَ

اته دیرشم درس

## فِي دُكَّانِ الْبَقَّالِ

په دکان کی

دُكَّانُ الْبَقَّالِ أَمَامَ بَيْتِ سَالِمٍ .

دکان دسالم کورته مخامخ دی.

نَبِيلٌ فِي دُكَّانِ الْبَقَّالِ .

نبیل په دکان کی دی.

اَلْبَقَّالُ وَرَاءَ الْمَكْتَبِ .

دکاندار دمیز شاته دی

اَلتِّلِيفُونُ أَمَامَ الْبَقَّالِ .

تلیفون ددکان دار مخکی دی.

اَلتِّلِيفُونُ فَوْقَ الْمَكْتَبِ .

تلیفون دمیزد پاسه دی.

(c) ketabton.com: The Digital Library



## فِي دُكَّانِ الْبَقَّالِ : په دکان کی (لاندی شیان موجود دی)

صَابُونٌ

صابون

أُرْزٌ

وريجی

سُكَّرٌ

بوره

خُبْزٌ

ډوډی

شَايٌ

چای

بُنٌّ

قهوه

ثَلَّاجَةٌ

یخچال

جُبْنٌ

پنیر

زَيْتُونٌ

زیتون

(c) ketabton.com: The Digital Library



نَبِيل يَقُولُ لِأُخْتِهِ : دُكَّانُ الْبَقَّالِ مُنَظَّمٌ بِانْتِظَامٍ .

**نبيل خپلې خورته وائي: ددکاندار دکان منظم دی نهاد.**

اَلْجُبْنُ فِي طَبَقٍ نَظِيفٍ. وَالزَّيْتُونُ فِي طَبَقٍ نَظِيفٍ. وَالْأَطْبَاقُ فِي الثَّلَّاجَةِ .

پنیر په پاك قاب کی دی. او زیتون په پاك قاب کی دي. اوقابونه په یخچال کی دی.

اَلْأَرُزُّ فِي صُنْدُوقٍ. وَالسُّكَّرُ فِي صُنْدُوقٍ. وَالصَّابُونُ فِي صُنْدُوقٍ.

وریجې په خانه (صندق)کی دی. بوره په خانه (صندق) کی دی او صابون په خانه (صندق) کی دی.

اَلْبُنُّ عَلَى رَفٍّ . وَالشَّايُ عَلَى رَفٍّ آخَرَ . وَالرُّفُوفُ عَلَى الْحَائِطِ .

قهوه په طاقچه کی ده. اوچای په بله طاقچه کی دی. اوطاقچې په دیوال کی دی.

اَلثَّلَّاجَةُ فَوْقَ الْخَشَبِ .

یخچال دلرګی دتختی دپاسه دی.

وَالزَّهْرِيَّةُ فَوْقَ الثَّلَّاجَةِ .

او ګلدانی دیخچال دپاسه ده.

اَلْبَقَّالُ وَرَاءَ الْمَكْتَبِ .

دکاندار دمیز شاته دی.

وَالرُّفُوفُ وَرَاءَ الْبَقَّالِ .

او طاقچی (خانی) ددوکاندار شاته دی.

اَلْمَكْتَبُ أَمَامَ الْبَقَّالِ .

میز دوکاندار مخکی دی.

وَالتِّلِيفُونُ أَمَامَ الْبَقَّالِ .

او تلیفون ددکاندار مخکی دی.

